# انوارِ توحید

تصنیف

حضرت مولانا غُلام ربانیؒ

خورونکی :-

محمدی دارالاشاعت

۸/۴۳۴ لالو کھیت کراچی نمبر ۱۹

ادارہ بلاغ الناس

# فہرس

# پیژندګلو

دهزاره په الائی تپه کښې ګړنګ نوم کلی کښې قلم شاه بابا یو یاد عالم او درو ند سپین ږیرے وو د دغه قلم شاه بابا ځوئ محمد عادل کوره د نن نه څه کم وزیات پنځوس کاله دوړاندے یو هلک پیدا شه مور پلار د هلک په راتلو ترخپله وسه خوشالئ اوکړے او نوبت جان نوم ئے پرے کیښود ۔

نوبت جان د مور پلار د سوری لاندے په نیازنو

لو ئيده د قدرت يوه قاعده د اهم ده چه دچانه
څه کار آخلي يا د څه مقصد د پاره ئے تياره وي نو
دنياوي آسرے ئے خورے کړي۔ نوبت په وړوکوالی
کښے بے موره بے پلاره شه۔

په دغه زمانه کښے دوطن په واسيمه د منظم تعليم
څه خاص رواج نه وو۔ اکثر د جماعتونو نه د مدرسو
کار اخستے شه۔ او د کلي ديو عالم ترڅنګه به يو څو طالبان
راغونډ وو او د فارسئ، عربئ مروج نظم، نثر کتابونه
به ئے ترے لوستل۔ په دغه مدرسو کښے به لوست
ډيرا ونيک په نوم قدر لرهم نه وو نو اکثر به داسے
اوشوه چه د دغه مدرسو يو فارغ التحصيل به کتابونه
خو ډير لوستي وو۔ ولے په خپل نوم ليکلو به هم
نه پوهيدو

نوبت جان هم د وخت په دغه مروج مدرسو کښے
د خپل کلي په مدرسه کښے په سبق کښيناست۔ په
اوله ورځ ور له اُستاد د نوبت جان نوم په غلام ربّاني
بدل که

غلام ربّانی خاموش طبیعته او ذهین هلک وو۔ طبیعت ئے نظم ته ډیر مائل وو۔ د دغه استادنه ئے د فارسئ او عربئ د نظم، نثر او صرف نحو کتابونه اولوستل۔ د مثنوی مولانا روم نه ډیر متاثر وو۔

د شاعرئ ابتداء ئے هم د مثنوی د لوست د زمانے نه شروع کیږی ـــــ د طالب العلمئ په زمانه کښے پرے د عرق النساء رنځ اولګید۔ اته کاله په دغه رنځ کښے اخته وو۔ دغه دوران کښے مولانا صاحب واده هم اوکه۔

مولانا صاحب دوړوکوالی نه تصوف ته ډیر مائل وو او اکثر چه د چا پیر فقیر نوم به ئے واوریدلو ځان به ئے رسوو۔ د عمر سره سره ئے د دغه جذبه او شوق هم ځوانیده۔ چه څه وخت د عرق النساء د رنځ نه جوړ شو نو د چا کامل په تلاش سرشه او مدعائے هله سرته شوه چه د حضرت پیر طریقت مولانا شمس الدین سید پوری مظفر آبادی قدس سرهٗ سره ئے ملاقات اوشو۔ د حضرت نه ئے په نقشبندیه

سلسلہ کښے طریقه اوکړه - دحضرت شمس الدین رحمۃ الله علیه پیرنیکه دا تهک حضرت جی صاحب رحمۃ الله علیه وو-

مولانا صاحب ډیر متوکل، خوش خُلقه او فیض رسان انسان دے د دغه علاقے د پاره دمولانا صاحب وجود یو رحمت دے - د طبابت کار هم کوی - دمولانا صاحب د پښتو او فارسئ کلام مرکزی خیال دخدائے او رسول مینه ده - دے دتوحید په ژبه خلق ددین دغه پسینے لارے ته بلی - د دے کهول کلام اکثر تفسیری حیثیت کم او تاثیری زیات وی او هم دغه تاثیری کیفیت دمولانا دشاعری یو امتیازی خصوصیت دے - پښتو ژبه ئے ډیره مهینه او ساده ده ځائے په ځائے د فارسئ او عربئ دتهکو استعمال دمولینا نه په بے وسئ کیږی - دتصوف ډیر باریک نقاط او اصطلاحات پداسے آسانتیا بیانوی چه دمولینا د باطنی پوهے خاص پرخه ده - دمولنا په مطبوعه اثارو کښے گنج توحید (فارسی) شرح اسمائے حسنه (پښتو)

مو نځ مترجم (پښتو) تفسیر سوره فاتحه مترجم (پښتو) دخاص ذکر قابل دی، ددے نه علاوه مولینا په کښې دینی مسایلو په پښتو فارسی کښې یوه کافی منظوم ذخیره لری۔

وَمَا تَوْفِيقِي إِلَّا بِاللهِ

احقر پیر محمد شارق

اگست ۱۹۶۰ عیسوی

مطابق صفر ۱۳۸۰ هجری

# پیل

تیرکال حضرت مولٰنا غلام ربانی نقشبندی مدظلہٗ العالی پہ میلمسیا کراچئ تہ راغے ځما ورسرہ دیو مهربان په وساطت پیژند ګلوا وشوه د انوارِ توحید (چه په معنیٰ ګنجِ توحید دے) قلمی نسخہ حضرت مولٰنا ډیر په فراخدلئ ما ته راوسپارله، وے چه زه دلرے بو میلمه یم ما دځان سره دا سوغات ستا سو د پاره راوړے دے۔

"برګ سبز است تحفہٗ درویش"

دمضامین ترتیب مے شروع که۔ خود فقیر کار هله
کیږی چه باطنی حکم او شی۔ ځما د انتهائی کوشش
باوجود یه څه نه څه اړ دلته راپیښ شه، چه د ترتیب
کاربه په ځائے تپ او دریدنن زه داخپل نیکبختی گنړم
چه ځما ذکرړ و مصروفیاتو باوجود انوار توحید چاپ
شه او که داحقیر کوشش دچا څه په نسبکړه راشی
نو هغوئ ته خواست دے چه دا باسین ګران مدیر
غلام قادر خان دے په دعا یاده وی دا د هغوئ د
ډاډ او مرستے نتیجه ده چه نن دپښتو ادبی پنگه کښے
دانوار توحید شان بختور عمی اضافه اوشوه

وما علینا الا البلاغ

احقر

محمد بهادر

محمدی دارالاشاعت۔ کراچی

# رموز راز

آفرین دعاشقانو په همت بیا
آفرین شه دخوبانو په زینت بیا

آفرین شه دعاشق په تب وتاب
آفرین شه دترکانو په منت بیا!

په جنون دعاشقۍ دے صد رحمت وی
آفرین شه دلیلیٰ په لیاقت بیا

شابه شابه دعاشق په اطاعت
آفرین شه دهادی په هدایت بیا

آفرین دعاشقۍ په مریدانو
آفرین شه دمرید په ارادت بیا

آفرین دے دأستاد په دلبرۍ وی
آفرین شه دشاگرد په علمیت بیا

آفرین شه دعاشق په سوزوساز
آفرین شه دخوبانو په رغبت بیا

کبر ناز د دلبرانو اِبتلاء د ه
آفرین د عاشقانو په کلفت بیا

شکر شکر د مولیٰ په نوئے دولت
آفرین د غریبانو شکریت بیا

آفرین دے د غلام په غلامئ وی
هزار حمد د مولیٰ په عنایت بیا۔!

# نور دمعرفت

رحیمه خدایاء دغفران په دولت را که غنا
رحیمه خدایه د رحمت په حرمت ماکه رها
ستاریت لرے ته، جباریت لرے ته
کریمه خدایه دکرم په قوت را که سخا
حیات عزت لرے ته، علم قدرت لرے ته
قدیره خدایه د قدرت په قوت را که هُدیٰ
سمع بصر لرے ته، په غیب نظر لرے ته
خبیره خدایه دخبیر په حکمت را کړه نفقا
ازلی شان لرے ته، ابدی توان لرے ته
قدیمه خدایه دفنا په دولت را که بقا
گنهګاری دغلام، شرمساری شا مدام
غفوره خدایه دتقوئ په قوت را که تقیٰ

# "نغمه د توحید"

زه د توحید انکار لرم که پرے تودیږے راځه

زه نور الٰہی شور لرم که پرے تودیږے راځه

ستا د نار ت نه ځما نور یه کما مت نه کوی

زه جلالی انوار لرم که جلوه کیږے راځه

کمالیت مے دے شامل له هر صفت سره

زه کمالی طاقت لرم که کامل کیږے راځه

ځما جمال دے لازوال قدیم له ذاته سره

زه جمالی زینت لرم که عاشق کیږے راځه

په لوئے دعوت د جلالت جمالت غوا رم له تا

زه د حیرت نعمت لرم که حیرانیږے راځه

غلامه خدائے دے دموله په غلامیٔ که منظور

زه مولائی قوت لرم که غلام کیږے راځه

# راځه

راځه، راځه، یاره راځه، راځه له رازه سره

نازنینه، نازنینه، ناز راوړه له رازه سره

مرحبا، مرحبا، اهلاً وسهلاً راغلې په سیر

ته روانه، خیرامانه، قدم له نازه سره

ستا د دیدار په انتظار، دواړه چشمان دي نګران

رنګ بې ګونه، تن بې چونه، رفتار له نازه سره

د غلا مې ګرمي چه ګرمه شي مولا شي رضا

نغمه د سوز د بندګۍ ښائي له سازه سره

# "استغفار الله توفیق"

مایار کړے یار بیزار شه په آزار
په یارئ سره چه یار که ما اغیار
د اغیار یارئ خوارئ او بدکارئ ده
خدائے دے نه کړی شرمسار شوک پدے کار
تر قیامته ماله دا ندامت بس دے
نصوحا غوندے توبه یم استغفار!
د توحید په کړئ کرم سر ځما دے
د مجلس تړئ ځما کرم گفتار
په خدمت د عاشقئ کنبے د خوبانو
بے غزله ځما نه زده بل روز گار
لویه خدایه د خدائئ له برکته
ما غلام په محشر مه کړے شرمسار

# استغفار الله تقصیر

له ډېره شرمه نه ما ډېر تا ته کتلی ندی
په سپین رخسار دې شته خالونه ما لیدلي ندي
په کتو خاندې خوشالیږې هیڅ خفقان نه کوې
په حق کتو سره ما تا وته کتلی ندی
دا سرا سر ځما نقصان ستا خو احسان دې مدام
له خپل تقصیره نه ما تا وته کتلی ندی
د عاشقۍ په مشرب دا مذهب نادرمونده شي
له غیریت نه ما اغیار وته کتلی ندی
په منظورۍ دې شي منظور ځما طاقت دغه دې
په اطاعت کښې ما بل چا وته کتلی ندی
نازبردارې د موږ کار د غلامۍ دغه دې
ما په خدمت کښې له دې غوره څه موندلی ندی

# دیدار

په جمالت سره چه اوګورے مزدور به شمه
په جلالت سره چه اوګورے رنځور به شمه
ستا د قدرت په پنجه خیروشر ځما دے موقوف
رحمانیت سره چه اوګورے مسرور به شمه
ستا مزدوری ځما په حق کښے سلطانی نوابی
په مغفرت سره چه اوګورے مغفور به شمه
له جهالت نه کهالت ځما فطرت دے خراب
د کرامت سره چه اوګورے مامور به شمه
د هدایت په اشارت چه کرشمه کړے دنارا
ابداً، دائماً دلداره ستا مسحور به شمه
ستا په کتو کښے نقصان نشته کل تقصیر ځما دے
که لله خلاصه نه دے اوګورم منصور به شمه
په غلامانو رحم بویه چه مولائے رحیم
په لطافت سره چه اوګورے منظور به شمه

# عنایت

هر صورت چه دلالت د حقیقت دے
هر دلیل دے خپل منزل وته رسا
دا مکان دے لامکان سره پیوند
لکه اسم جدا نه ئې له مسمیٰ ــــــ!
هر صورت او هر قوت چه دامکان دے
حقیقت کښې له قدرت نه دے عطا
غلامي د غلامانو میراث نه وو
هدایت او عنایت شه د مولا

مسلمانی د مسلم شوه ستومانی د مسلم

د بدعتیانو له بدعته په لرزان شومه

د سیدان پوری په فیضان شه چیر عالم مسلمان

د ماورا اعراله غلامی نه په امان شومه

د غلامی دا بیان د بندگی نظمو نه

په فضل پاک د پاک مولا وحدت بیان شومه

# تصوّف

دتن خاکی قلعه ناسوت دے ملکوت دپاره
جسمانیت دے جیل خانه د ملکوت دپاره
خوږ ځے شیے به اندیښنے وی دخوراک وپوشاک
آخرکار به وی رفتار د ملکوت د پاره
په توره شپه کښے د ناسوت تکرے خوړے له حرصه
په آخردم به شے بے دم د ملکوت د پاره
ملکوتی نورانی کور دے که خپل تورپه غفلت
دخدائے طاعت نورانیت دے ملکوت دپاره
لکه دخرکوے گذر په منیر وشر برابر
ستاحقیقت دے عاقبت د ملکوت دپاره
دغلامانو په خدمت کښے ده رضادمولے
دار ومدار د شریعت دے ملکوت دپاره

# حال

زړهٔ ځما پرقیږي د توحید په برقیت سره
سترګې مې ژړیږي ستا د مخ په شمسیت سره
تاب د جلالت چه په جلوه شي نه بې تابه شم
زړهٔ ځما نړیږي ستا د حسن سیاست سره
هله به بې غم شم چه بې دمه شمه له دمه نه
عمر دې تیریږي د خوارۍ په عزلیت سره
تیر به شي دوران د آزادۍ بند به په ګوړ شې
جسم جوهري دې فنا کیږي خاکیت سره
وخت د بندګۍ بنده تیریږي بندګي کوه
ستا اکسیري ژوند دې خرابیږي په غفلت سره
شکر په دولت د غلامۍ دې چه غلام شو مه
عیش د آزادۍ دې مولا را کړي آخرت سره

# اعلان دتوحید

زہ دتوحید پہ چغو، زہ دتوحید پہ چغو
تاؤتہ نارے وھمہ
زہ دیاریٔ پہ سترگو، زہ دیاریٔ پہ سترگو
تاتہ اشارے کوؤمہ
راشہ، لہ ما نہ شہ ما، زہ بہ لہ تا شمہ تا
زہ پہ رنگدار ولبو، زہ پہ رنگدار ولبو
تاسرہ یاری کوؤمہ
اوربہ دے بل شی پہ زڑہ، حال بہ جل بل شی دزڑہ
زہ دوصال پہ پتہو، زہ دوصال پہ پتہو
ستا زخم سازی کوؤمہ
سرتور سرعیہ زہ، پہ کوخو سرعیہ زہ
ستا در خسار دلیدو، ستا در خسار دلیدو
ستا انتظاری کوومہ
پدے بہ مرشمہ زہ، پہ خاک بہ خرشمہ زہ

دعاشقئ په اوښکو، دعاشقئ په اوښکو

تاته خون باری کوومه

که ګنهګار دے غلام، که شرمسار دے مدام

ژړا دمولا په خوښو، ژړا دمولا په خوښو

ستا بردباری کوومه

# منزل

ده په اسم ابتداء — انتها په مسمیٰ
یوه لاړ ده مستقیم — برابر تر مسمیٰ
په حضور سره چه یاد شي — یو شي اسم مسمیٰ
بې حضوره چه یادیږي — یو له بل نه وي جُدا
ځکه اسم ، مسمیٰ — نه چه یو دے نه جُدا
حضوري بې حضوري — وصل فعل که پیدا
دا کُلفت د بندګۍ — دعوا مو اِبتلاء
عاشقان ترے په امان — شو په فضل د مولےٰ
تصور د اسم نه کړي — خیال بسته په مسمیٰ
دا آسا نه بندګي ده — هم له ذاته نه عطا
ګرفتار په تکرار نه وي — ګرفتار وي په سودا
وړوک منزل شي هم مقام — یو آشنا شي بل آشنا
یار هې پاتے د اغیار — یار چه یار شي د هر چا
ختم کار د غلامۍ شي — په حرمت د خپل آقا

# آئینه د زړهٔ

ستا د مخ عکس زیباله — دا ځما شیشه صفا ده
تعارف له ستا د شانه — دا ځما د سر سودا ده
د غه ستا بوج د عرفان ته — ما غریب ترمړے ملا ده
نبا یه بل ځما په شلنے — تا پرے کړے ابتلاء ده
دا ځما نعره د عشق — دا ازل قالو بلیٰ ده
بها د رشوم په عالم کښے — عبدیت نغمه ځما ده
د غه طوق د بندګی ته — اولیں غاړه ځما ده
ماله شوقه ملا ترمړے — د توفیق برخه له تا ده
نه مختیار یم نه مجبور — میانه درجه ځما ده
دا تمام مظهر د کن — ستا دیو نظر بها ده
استغفار او الامان — کرشمه دے بے بها ده

د مولے په خپل غلام کښے
د خدمت نه مدعا ده

# قوت د عمل

زه رضا ستا په رضا — که وفا ده که جفا

څه چه تا سره لائق دي — هغه ته وکه له ما

څه چه ما سره لائق دي — هغه مه کوه په ما

توبه توبه معرفت زه — عافيت غواړم له تا

ته معاف کړے لويه خدايه — ماجرا جرم ځما

آسنډ لاسے خورسنده کړے — قوت را که د تقوىٰ

فراغت، عافيت غواړم — معرفت سره له تا

آشنائي د غلا ما نو

لوئے کرم دے د موئے

# حقیقت حال

لکه حیران له حیرانۍ نه سرګردان شومه
چه طلب دارد بې مانده کا بې نشان شومه
دحیرانۍ له دسته، شوم په بیابیا بې دسته
لکه ویران له ویرانۍ نه پریشان شومه
په درس د "الست" تعلیم راکړے دے علیهماته
دربوبیّت له علمیت نه مکتب خوان شومه
په ارادت دکثرت ازلی شان و شنت
درحمت په عنایت سره شادان شومه
دجلالت اطاعت درسالت صداقت
ظاهر باطن کښې خبردار له خپل ایمان شومه
دنبوت حقیقت علم قدرت دلالت
په ثمرات دمعجزاتو مسلمان شومه
دربوبیت عنایت کارکړ په کار دوحدت
په صدارت دمعجزاتو حق میلان شومه

# جمال وجلال

ستا د مخ له تاوه دواړه سترګې سرې

زړهٔ ځما بانـدې بلېږي لمبې سرې

یا سرې سترګې سرې سروټکې د نیران دي

یا ورتیږي د عاشق د زړهٔ قطرې

چه را واړه وي د ناز کرشمه دارې

هم باري ځما په لوړ نه ګړي اسرې

دا ځما ژوندون د حسن اِبتلاءٔ ده

یا بلا ده چه پرې شوم ذرې ذرې

# قرآن او مسلمان

له تا خفا دے مسلمانه دا قرآن ولے؟
منے په ژبه عمل نه کړے په فرمان ولے؟
خفا قرآن دے له تا
یا تے فرمان دے له تا
رضا شیطان دے له تا
وریئے ایمان دے له تا
شوے مسلمانه ته له مانه روگردان ولے؟
منے په ژبه عمل نه کړے په فرمان ولے؟
له تا نه غواړی کلام
ایمان په ما که تمام
زه به دے وکړم نظام
خلاصے به درشی مدام
خما د حکمه مدامًا خلاف روان ولے؟
منے په ژبه عمل نه کړے په فرمان ولے؟

په ما ايمان لري

تش په ژبان لري

په زړهٔ نقصان لري

ظاهر بيان لري

خالي په خولې وائي خپل ځان ته مسلمان ولې؟

منې په ژبه عمل نه کړي په فرمان ولې؟

راشه غيرت کړه په ځان

پرېږده د رسم بتان

مکړه رواج د جهان

کار د توحيد که روان

په يو الله، رسول ، کتاب اننه کړې ګذران ولې؟

منې ژبه عمل نه کړې په فرمان ولې؟

# راشه

راشه، راشه، حمایاره راشه راشه
له دیداره طمع داره راشه راشه

چه تابه د طبیعت پرے سره زر کیږی
کیمیاگره اکثیرداره، راشه راشه

چه مفتون پرے له فتنو نه رها کیږی
له علاجه خبرداره راشه راشه

چه په یو نظر دے خاورے اکسیر کیږی
له نظر [illegible] ره راشه راشه

چه غلام دے له هوا نه فنا کیږی
له بقا نه وفاداره راشه راشه

# حیرتِ ناسوتی

تا څخه ، تا څخه ، تا څخه دے روح ځما
روح ځما ، روح ځما ، روح لره دے روح له تا
کل لره ، کل لره ، کل لره کلذارے ته ځ
کل لره ، مل لره ، کل له کلبانی له تا
کار دځما ئے ځما ، ستاله ځما ئے نه دے
کار ځما کار ځما ، کار له ده کاری له تا
کیف دکونا کون کل ستاله بے کیفی نه دے
کیف ځما ، کیف ځما ، کیف له ده کیفی له تا
رنګ لره ، رنګ لره ، رنګ له رنګدار ی له تا
وجود ، دناسوتی وجود ، یعنی له روحی وجود
وجود له د روحی وجود ، جودارادی له تا
بے له نا بے له تا ، نیشته بودوباش دچا
ما څخه ، ما څخه ، له تا ده حیاتی ځما
دا کلام ، دا کلام تام که دتوحید سره

قال ځما، قال ځما، حال د قوالی له تا
خښه یم زه، خښه یم زه، دا خښه ر تا ښ وینا کوُوم
حال د غلامئ لره، تاب د غلامئ له تا

★

تشریعی حساب منم — قضا رضا منم
شکر دا چه په فرمان یم — دین اسلام تمام منم
زه غلام د دین اسلام یم — خدائے رسول په حق منم
خدائے دِ خیر کړی دا ر نیو — زه د عشق اثار منم

دا غزل مقام د عشق دے
زه د عشق بیان کوُوم

# اتباعِ سنّت

خو چه محبت له محمدؐ سره زیا ستیرږی
دومره به قوت په نیک عمل کښې پیدا کیږی
دین که ورته وائی محمدؐ مظهر د دین دے
غیر د محمدؐ نه د یانت نه پیدا کیږی
واخله هغه خه چه محمدؐ راورے تا لره
منع له منهی شه مسلم بس مسلما نیږی
رضا وکبریا ده مصطفیٰ پورے موقوفه
غیر له محمدؐ نه پاکؐ مولا نه رضا کیږی
بدعت د بدعتیانو خسارت د آخرت دے
زنګ دے آهن خو اچه په آهن کښې پید اکیږی
ایمان وائی توحید او رسالت ته د احمدؐ نبی
بیا د بدعتیانو په بدعت ولے زیانیږی
خدایه د بدعت نه د غلام غلامی خلاصه که!
توفیق د سنت ورکه بے توفیقه نه خلاصیږی

# حُمایا دیزی

دیدار دهغه یار خیر الابرار حُمایا دیزی
څوک چه ملکوت کښې په احمدؐ سره یا دیزی
پسته لدمړینې. پسته له عیسیٰ
شور به وی بر پا، تل به وی غوغا
جسم محمدؐ به محمدؐ سره یا دیزی
دیدار دهغه یار خیر الابرار حُمایا دیزی
منشائے مولےٰ، مظهر اسماء
برزخ کبریٰ، ولایتِ کبریٰ
حقیقت احمدی دے محمدؐ سره یا دیزی
څوک چه ملکوت کښې په احمدؐ سره یا دیزی
روئے محمدؐ، کوئے محمدؐ
خوئے محمدؐ، بوئے محمدؐ
محمود اسم احمدؐ، دے محمدؐ سره یا دیزی
څوک چه ملکوت کښې په احمد سره یا دیزی

شرافت احمدؐ، هدایت احمدؐ
کرامت احمدؐ، شفاعت احمدؐ
مطیع به په محشر کښې محمدؐ سره یا دیږی
څوک چه ملکوت کښې په احمدؐ سره یا دیږی
ایمان د محمدؐ، امان د محمدؐ
رحمان د محمدؐ، جانان د محمدؐ
نورِ سبحانی دے محمدؐ سره یا دیږی
څوک چه ملکوت کښې په احمد سره یا دیږی
ناسوت د محمدؐ، ملکوت د محمدؐ
جبروت د محمدؐ، لاهوت د محمدؐ
غلام د محمدؐ به محمد سره یا دیږی
دیدار د هغه یار خیرالابرار ځما یا دیږی
لا دی نه شی لا سره
ستا د لیاقت نشان
سودا دے وی له ما سره
ستا د فصاحت بیان
ازاد د پاک مولا به محمدؐ سره یا دیږی
دیدار د هغه یار خیرالابرار ځما یا دیږی

# مُدّوشہ

زه د توحيد چغے وهم ولاړیم ستا کوڅه کښے

جام د توحيد زه ګرځوم ولاړیم ستا کوڅه کښے

تا په توحيد پوه کوؤم ولاړیم ستا کوڅه کښے

تا له ایمان نه خبروؤم ولاړیم ستا کوڅه کښے

ستا په غم وښے تو یه ؤم ولاړیم ستا کوڅه کښے

لا ر د مقصود ته دے بوځم ولاړیم ستا کوڅه کښے

د خپل آقا سلام کوؤم ولاړیم ستا کوڅه کښے

د غلامۍ خدمت کوؤم ولاړیم ستا کوڅه کښے

# مست نه شے

ځما په یارۍ مسته دبل چا په یارۍ مست نه شے
ځما په توحید مسته داغیار په یارۍ مست نه شے

ځما جمال دے بے مثال، ځما کمال دے باجلال ـــ
ځما په دیدار مسته، دبل چا په دیدار مست نه شے

وسیع شه د مضمون جولان، تنګ شه د کاغذ بیان
ځما په ګرمۍ مسته دبل چا په ګرمۍ مست نه شے

کار د غلامۍ په تا، شان د مولائۍ په ما
ځما په خدمت مسته دبل چا په خدمت مست نه شے

# توصل

په سر کرمۍ کښې د توحید کرم گفتار ځما
په کردار ئ کښې د توحید کرم کردار ځما
که د مجلس یاران کرمیږي د توحید په چغو
لفظي شور دے د باطن کرم انکار ځما
را نژدے کیږه په حلقه کښې الله وایه الله
الله الله دے له کرمۍ کرم تکرار ځما
ته مسلمان ئے په جذبه د اسلام وایه الله
عاشق د خدائے شه په اخلاص کرم رفتار ځما
په تخت د زړه بادشاه اسم الله کیده کرسۍ
ذات اقدس په تصور کښې شه یار ځما
له شوقه واوره له مولا طلبه ځان که خبر
د بندګۍ په کرمۍ کرم دی اشعار ځما
هغه له کیف نه بے کیف له چون نه بیچون
په صفت پاک سره موصوف دے رب غفار ځما

د تمام امکان وجود علم قدرت کښې دے بند
دلیل د وصل اسم ذات وائیم افکار ځما
او کړه انصاف په کوم دستور کوے غفلت له مولا
په صداقت سره توبه غوځ که زینار ځما
خوف ورجاء، طمع تکیه په ماوُر امه کوره
دیو مولا په قدرت ختم دے هر کار ځما
پیر سید پورې، نقشبندی د سرهندی په عنوان
وایه غلامه ربانی نور الانوار ځما ـــــــ!

# غواړه له مانه ما

نیمه شپه ژاړه          نیمه شپه ژاړه
په هسکه غاړه          په غم لتاړه
ستا له ژړانه ډیر شرمیږمه زه
په تا رحمیږمه زه

د زړه له سوزه          د زړه له سوزه
ځان ته مې بوځه          ځان ته مې بوځه
ځان ته مې بوځه، نه د صبریږمه زه
په تا رحمیږمه زه

ځما غم خواره          ځما غم خواره
ځما دلداره          ځما دلداره
ځما نګاره تل کړیږمه زه
په تا رحمیږمه زه

جدائي سخته          جدائي سخته
په ما شوه سخته          په ما شوه سخته

په ماشوم سختہ نزدگیږمہ زه

په تا رحمیږ مه زه

ظاهر نشان ئے ته ظاهر نشان ئے ته

پاکی بیان ئے ته پاکی بیان ئے ته

باطن غلامه، مولاکیږمه زه

په تا رحمیږ مه زه

غواړه له مانه ما غواړه له مانه ما

غواړه له ما نه خوشالیږمه زه

په تا رحمیږمه زه

# "وحدة الشهود"

دا پهٔ څه شومه له تانه زه جُدا
وایه وایه مهربانه دلربا
دا ځما ځمائ وا په ستا کرم دے
کرم تل وی دکویم سره همتا
زه چه خپل احساس کووم اثرِ فعل ئم
فعل کله د فاعل نه وی جدا!
اثر څه یعنی چرتو دا ارزد ے دے
چه ظاهر کښے په صورت شی هویدا
اثر تل وی د تکوین چرے سوقوف
د تکوین وجود تر کن وی لازما
خوف خطر د مال وسر څه پکار نهٔ
مال وسر مے ستا له سر نه شه وندا
دغه ته صاحب د کن شے بل څوک نشته
غلام ولے ځان کنړی له تا جُدا!

# مکان از لامکان!

داحُما دبود و باشی معاش له تا دے
که آرام دے که نا آرام دے خوله تا دے
زه د ظل غونډے یم عکس د خپل اصل
که وجود دے خو اصلی وجود له تا دے
دا ظلی وجود عبرت دے له اصلی نه
که عبرت دے عنایت کرم له تا دے
ما په خپل احساس کښے ډیر فکرونه اوکړل
خاتمه د هر یو خیال احساس له تا دے
غرض دا چه حواله احوال حُما شو
چه حُما دحُمای نظام له تا دے
لنډه لار د ده د حیرت منزل ئے ته ئے
په دے لنډه لار غلام روان له تا دے

# "معائنه ذات قدس"

دا ځما په زړه نشین فکر دچا دے
تصور مے اندرون جبین دچا دے
تصور ستا د رخسار لمبه د اور ده
له دے اوره نه باطن سوے دچا دے
یو شغله چه شه مکان تر لا مکانه
داله عشق نه بل شوے اور دچا دے
خیال د فال دے د برقی بهتن د باړشه
په مکان باندے پرتو د مخ دچا دے
چه رڼا پرے لامکان شه له مکانه
دا د فکر بجلی ګرزیږے دچا دے
چه تالان ئے که ځما د زړه دالان
دا د غم نه باریده طوفان دچا دے
هم باری د تورو ستر ګو ستا کتل دی
داله ورایه نه هم باره نظر دچا دے

په دولت دار ادے غلام خـــــريد
وا يه ستاندے نګاره دبل چادے

☆

## حيرت

| | |
|---|---|
| خبر نه يم له ثوابه | نه خبر يم له عذابه |
| چه خبر شومه له تا نه | بے پرواه شوم له حسابه |
| نه مے شمار نه مے تکرار | يم بے تاب له سوال جوابه |
| په يکتا نظر چه ګورم | هر څه دی ستا له جنابه |
| د امکان په نظاره کښے | زه کهتر يم له حبابه |
| ستا د مخ بياض ته ګورم | خبر نه يم له بل کتابه |
| د هر سوال مقابله کښے | ستا بقا ده له جوابه |

په هستئ کښے دا غلام
لرو بر شه له حسابه

# مضمون از بال جبریل اقبال

لاړ د محبت کښې نوی ځوک د عاشق سره
مل وی ده عاشق مدام درد و غم سوز و ساز
ستاله خدائیې نه ده ځما دیو لیونتوب ګیله
ځان د پاره لامکان ما د پاره ده دے مکان
کلام د عارفانو وی خوش لکه باد صباح
تار کښې د معنے لد وئ نم وی د ژوندون صفا
کوځه که د شعیب نبی ستا شی د منزل مقام
لاړ د شبانئ پسے لاړ د کلیمی دوه ګام
عمل د عاشقانو وی سوز د د لبرئ مدام
ژوند وی پائنده وی تل موت وی په عاشق حرام
موت وی په غفلت سره عشق د بیدارئ وے تل
کار د بیدارئ سره روح کښې د بیدارئ وے تل
ملیح په ملاحت سره شعر د اقبال دے
مدار کښې په وحدت سره نظم ګرځنګوال دے

# قرآن په اُجرت لوستہ منع دی

په اُجرت سره چه لوه لي څوك قرآن
ناست په قبر د مرده وی ختمیان

مقرر ورلره حیځ حلوا چایو نه
آغستو نکے ده پیسو وی قاریان

ده قرئت په گرمۍ گرم شور ده دوی وی
یو ده بل قرئت ته نه وی سامعان

دغه فعل ده روئے په چار مذهب حرام وی
فانصتوا دلیل ناطق دے ده قرآن

دا ډوډۍ او دغه چائے روا نه دی
نه صواب دے چه پے خلاص شے مردگان

دا مرده که له قرآن وی خلاف تلی
دوباره تعذیب ول دی په قرآن

په قرآن کښے خو کوُل یا نه کوُل دی
دے په جوندوُ ولے دے دوا پر و بیفرمان

دوبارہ ملا متے شرمندگی دَه

اور بیدل لوستل حکمونه د قرآن

بله داچه ثواب خدائے ځنے موندیشی

نزدی لری کورمسجد په کښے یکسان

څه حاجت دے چه په باندے لولی

بے له قبرنه ثواب دے بے پایان

بے بدله دقرآن ثواب کثیر دی

چه د یو حرف ئے کید ے نشے بیان

که مردہ وی نیکوکار صاحب دبخت دے

په لوستلو ده قرآن وی شادان

دغلام چه له جنبه په غرض نه ده

خدائے دے ماکه له جنبے نه په امان

# اَطِیعُوالرَّسُول

صد افسوس دے دمسلم په انحطاط
درواد نا روا په اختلاط
درواج او دسنّت تمیز څه نیشته
بے پروا دی له تفریط له افراط
طبیعت متابعت ورته یکسان دی
آگاه نه شه دسنت په احتیاط
هدایت او ضلالت ته نظر نه کړی
روان نه شه یو قدم په سم صراط
داخواب جوند ون به تل ترتله نوی
راه ګذره بوی قدم [illegible] دصراط
دغلام زړه دتوحید په غم قلم شه
الغیاث په مسلمان غیر محتاط

# وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ الی الخ

دا عالم شه په رواج باندې تاراج
چه مذهب شه په عوامو کښې رواج

د ضامن په کفر یا تو دین خراب شه
هر یو بار رنګه زیبا دے د رواج

د هغو ایمان په خدائے په رسول نشته
چه یقین کوی په رسم په رواج

د واحد خدائے منت بویه نذر بویه
ابراهیم شه بوتان مات که رواج

په واحد صفت موصوف دے کافی ذات
څه حاجت دے د مسکن په احتجاج

دا کمزورے عقیده کمزور ایمان دے
بل څه نه دی خو عمل دی په رواج

دا غلام غواړی امان په هر زمان
چه بدعت نشی سنت کښې امتزاج

# استدعا

ماپروون لید لے ستا جمال زرین دے
تابنده په تب وتاب کښے پلوشین دے
همیشه به لائقان وی نگران ستا
په غفلت سره غافله کهترین دے
هیڅ ئے مثل له مثاله سره نیشته
بے له رنگه بے له گونه بهترین دے
ځما خیال دے ستا له خال سره پیوند وی
لکه تاک له مجاور نه سربرین دے
ځما خیال که خپله خیاله جدا مه کړه
تصور ستا د جمال ځما قرین دے
قرنیه یو خزانه د غلامۍ ده
غلام ځکه غلامۍ کښے خوش ترین دے

# "موت وحیات"

ځما د مرګ استاذے ما ته رسیدلے ندے
په دوا روسترګو ے له شوقه نه ښکل کړیدے
که په خندا راځے خندیږه په خندا به دروے
ما د آشنا استاذے چرے خفا کړے نندے
که ځما سر غواړے قربان دے له غوښتونه شمه
ما سرومال دخپل د لبر نه غوړه کړے ندے
ستا له نامے ځما اول آخر قربان دے قربان
ما له خپل مرګه نه ژوندون څه غوره کړے ندے
ژوندون خو ستا دے چه د مرګ نام ونشان نه لری
ځما ژوندون سوالی ژوندون دے د وترشومے ندے
ناشده وخت د امتحان دے خدائے دے درکړی برے
له ما ورائے نه ما امدا د چرته غوښتلے ندے
سید پوری پیره په پیری دے صد رحمت شه رحمت
تا په ارشاد کښے دبداعت سبق ویلے ندے

غلامه کړمه ستا نغمه ده د توحید د پاره
ستا په نوا کښې ما د شرک تناب موندلے

☆

# جذب شوق

زه به ګیله د خپل جنون صبا له چا نه کوم
لیونے تا کړمه ګیله به له بل چا نه کوم
چه په مژده د یعفوا عن کثیر بشیر شو مه
زه به اُمید د مغفرت صبا له چا نه کوم
مولا برحق د غلامانو دا سرار و ته ئے
زه به طلب د مولائی شفقت له چا نه کوم

# څه دی؟

نه پوهیږم د دنیا دوران کښې څه دی
خفا شوی د دنیا یاران په څه دی

زه چه ګورم سراسر د خاک بازی ده
جدا شوی د دنیا دوستان په څه دی

له ډیر حرصه د چاسترګې مړې نه شوې
پراندۀ شوی ئې د حق چشمان په څه دی

حق بینی د حق بینا نو حقیقت دے
بے له حق نه کوشیده عرفان په څه دی

کور و کرشم له دې د هر دیاره نو
بے وفا د زمانے خویشان په څه دی

د قدرت په قبضه بند شه سود او زیان
بے حیا د سود او زیان دوستان په څه دی

هر فانی به په فنا سره فانی شی
غنوده د بیداری مژګان په څه دی

دا غلام چه دخو بـا نو غـلامی کړی
محجوب شوی له مولا ترکان په څه دی

☆

# شریعت ـــــ طریقت

ځانوے نوے خیال
ستا تازه تازه جمال
هر ذرّه مظهر جمال
جلوه کړستا د کمال
نوے فکر نوے حال
هوش ودم په قیل وقال
په هر آن په هر زبان
تصور د خط وحال

# انکسار

په نامه د غلامۍ بانده غلام يم
په هنګام د مزدورۍ کښې ناتمام يم
ناتمام خو ناتمام وي شا مدام
ناميده په بد نامۍ سره بدنام يم
هيڅ بدنام به نيک نام نه شي په نيکۍ
له ازل نه جهالت سره بدنام يم
ځاخپل جهل په ما ظلمونه اوکړل
زه له خپلې بدرنګۍ ځنې بدنام يم
له ناکامه نه ما کام اخستې نه دے
زه له خپلې خودرائۍ ځنې بدکام يم
په صله د مغفرت به نجات غواړم
چه ناقصه غلامۍ کښې زه غلام يم

# روحي ذکر

خالق مې په خیال لره نادانه زه دلدار یمه
ستا په طلب کښې زه له تا نه وفادار یمه
تغافلي مه کوه تساهلي مه کوه
که ته بیدار یې زه بیدار له هر بیدار یمه
غفوت له علمه سره، کووَم له حلمه سره
ته گهنګار یې زه په وصف کښې غفار یمه
ستر صفت دې ځما، کار مرحمت دې ځما
که ته شرمیږې زه له تا نه حیاکار یمه
واجب وجود یمه زه، صاحب دجود یمه زه
رحم که غواړې له رحمت نه زه تیار یمه
کرم دې کار ځما، رحم بسیار ځما
که ته په شمار یې زه له تا سره بې شمار یمه
خوف و رجاء لره تکیه په مالره
که ته غلام یې زه مولی ستا نمک دار یمه

# فَفِرُّوا اِلَی اللّٰه

دماشوم په موراو پلار پسے جبئي وی
ژړیدو نکے د آبا په جدائ وی
عاشقان په معشوقو پسے ژړ یږی
چه په خیال ئے تور ے ستر گے خمارئ وی
حقیقت لکه ماشوم توحید یئے مور ده
تصور ئے محبت دما دری وی
بے له موره دماشوم څه قرار نه شی
که د سرو زرو ئے جوړه گوارئ وی
آرام گاه دماشومانو غیږ دمورده
بے له موره ئے دوا ړه ستر گے خون بارئ وی
دعارف گذاره بے له خدایه نشی
په آرام کښے ورته ښینے بیمارئ وی
بے مولا دغلامئ ژوندون دوزخ دے
په دوزخ کښے به څوک څه په قرارئ وی

# بشریت ــــ خصوصیت

په یولا س کښے ملن دہ دلاهوت
په بل لاس کښے خرمن دہ دناسوت
په مابین کښے دتراب او د سماءُ
معلق وجود څما لری ثبوت
په یولا س کښے قرآن دے دا یمان
په بل لاس کښے شیطان کوی کرتوت
په یولا س کښے هوا دہ غم هوس
په بل لاس کښے ورق دی دقنوت
په یولا س کښے جلوہ نور د صباح دے
په بل لا س کښے ظلمت لری ثبوت
په یولاس کښے غنچه دہ د توحید
په بل لاس کښے بشرہ دہ دخپل بُوت
په یولاس کښے نعمت دخپل مولا دے
په بل لاس کښے غلامی دہ دخپل قوت

په يو لاس کښې غنم دے د جنت
په بل لاس کښې نيسلے برګ توت
په يو لاس کښې خمار رنګ صبغة الله دے
په بل لاس کښې خمار رنګ دے د تابوت
په يو لاس کښې د غلام دے کنود ت
په بل لاس کښې دار مدار د ملکوت

★

# ايمان

د ايمان نام و نشان — يو خبر دے بل نظر
د ايمان مقام کنړل — هم مثل هم پيژندل
ورسره دى پوهيدل — ضرورت لرى کول
حکم خدائے حکم رسل — په اقرار تصديق ورل
که کتاب دے که سنت
يو منل دى بل کول

★

# تلوین و تمکین

دَ آوَا امرِ دا امتثال دے پہ کردن ځمونږہ
خواب وخوردن ځمونږہ

خواب دغفلت مہ کوہ کار پہ اجرت مہ کوہ
غیراللہ نیت مہ کوہ شرک وبدعت مہ کوہ
ختم آخردے پہ مردن ځمونږہ
خواب وخوردن ځمونږہ

جلالی نام لرہ زړۂ پرے کل قام لرہ
ذکرِ دوام لرہ حضور تمام لرہ
دَ بندگیٔ چال وچلن ځمونږہ
خواب وخوردن ځمونږہ

خرچ خوراک دسفر سبیلِ راہ گذر
حُصولِ کارِ هُنر سترُ ورِ بارِ خبر
خود لامکان بہ شی مسکن ځمونږہ
خواب وخوردن ځمونږہ

ربوبیت دکریم　　الوهیت د رحیم
ستّاریت دحلیم　　غُفرانیّت دا شیم
له فضل پاک رهیدن حُمونزه

آمین آمین آمان　　حُما ایمان آمان
نشانِ بے نشان　　عیان بے عیان
دغلامی دُرِ گفتن حُمونزِه
خواب وخوردن حُمونزِه

# مشاهدهٔ انوار

ستا له زلفو پیچیده وی فکر پاک
مجاور سره پنجه وی تارد تاک
لکه برق به له عالی طبقاتو تیر شی
چه د فکر عقاب خلاص شی له مغاک
چه له شرک ریا، بدعت، رواجه تیر شی
شفاعت به ئے کړی ضرور صاحب لولاک
له صراط مستقیم به وانه وړی
زین شده ابلق د فکر په فتراک
چه ئے حال شی له موړے نه فکر خیال
د غلام جیلانی هیڅ نه لری باک

# نیبغه لار

عشق پیدا کیږی د وحدت په چغ چغو سره
خدائے نه مونده کیږی د رواج په شک شبو سره
رنځ د عاشقۍ کله جوړیږی په دارو سره
عمر د عاشق دے چه تیریږی په خوارو سره
زړونه خړو بیږی د رحمت په فوّارو سره
جام د توحید نښائی برابر د لبو سرو سره
تش ځان ډکیږی د فیضان په قم قمو سره
نفس ابلیس ورکیږی د وحدت په بمبارو سره
زړهٔ خو بیداریږی ستا د غم په دغ دغو سره
وینے مے جوشیږی ستا د خیال په غلغلو سره
زړهٔ پریشانیږی د انفس په ولولو سره
سترګے خوږیږی د هجران په بلبلو سره
خدائے نه رضا کیږی د رواج په چلولو سره
جوش د زړهٔ زیاتیږی د توحید په ترانو سره

باغ د سید پورډک دے د توحید په شګوفو سره
زر به شي غنچې غلا مه راوړه په جولو سره

# نغمۂ معرفت

دا ځما فکر مضراب سینه رباب
نغمه ګین دی ستا د زلفو هر تتاب
ساز او سوز د هر آواز جدا جدا
هر یو تار ستا په رخسار دے پیچ و تاب
اهل دم له زیر و بم نه کوی دم
پوره نه که چا د خپل فکر کتاب
چه له دم نه شی بے دم نسل آدم
هغه دم به شی بے غم د غم حساب
بے له مرګه خود یار نقش و نګار
سوړ انګار زړه د عاشق لری کباب
له ناسوته او ملکوته خبر نه وی
ماسوی له یاره هر څه دی حجاب
خیل د خیال ئے له زمانه وی نسیلے
له دوامه ایقانئے پینه په رکاب

دغلام دغلامئ مزدوری ورکه
یغی پورته که دخپل حُسن حجاب

☆

# قرب وجوبی

نیک عمل او نیک حضور علامه دہ دقربت
دا اول مقام دفضل دغه بل له توفیقت
هدایت سرہ اول دے دا دویم په عنایت
بل په کسب پیدا کیږی عملی کیفی قربت
په سجدو په نوافلو په قیام په رکوعت
په زکات او په روجو هم په حج هم په وحدت
حسنات قرب امکانی دی صالح نیت په هرساعت
دا ټیکه شرطونه غواړی یعنې قرب دامکانت
دا مکان بود و مباش دے له علمه له قدرت
یو عطا د پاک مولا دہ
دغلام غلامیت

# تبارك اسم ربك ذو الجلال والاكرام

له جملو شیرینیانو — دے شرین نوم د الله

له کل واړه نمکیاتو — نمکین نوم د الله

له همه وتحفه جاتو — بهترین نوم د الله

له الذ د لذیذاتو — خوش ترین نوم د الله

له دے تولو ساتغاتو — سایغین نوم د الله

له دے تولو فتوحاتو — فاتحین نوم د الله

له هر قسمه میوه جاتو — فاکهین نوم د الله

له تمامو فایزاتو — فایزین نوم د الله

له سمک نه تر سماکو — سائرین نوم د الله

په زړکی د ذاکرانو — بارقین نوم د الله

د نافی له عطریاتو — نفسین نوم د الله

له بهترو شاربانو — عسلین نوم د الله

دده نور له شعاعاتو — ناشرین نوم د الله

د قمر له نایراتو — نورین نوم د الله

د امکان لا مکاناتو — لا مکین نوم د الله

هم د نور له تجلیاتو — جلوه گین نوم د الله

د ایمان له آماناتو — آمنین نوم د الله

د عروج له مقاماتو — عارجین نوم د الله

د رحمت له نزولاتو — نازلین نوم د الله

د خرقت له خارقاتو — خارقین نوم د الله

د کرم له کراماتو — کارمین نوم د الله

د ریحان له رائحاتو — رائحین نوم د الله

د گلاب له عطریاتو — عَطرین نوم د الله

د امکان له تریاقاتو — شافئین نوم د الله

د شاکر له شکریاتو — شاکرین نوم د الله

د حافظ له حافظاتو — حافظین نوم د الله

د سرهند له ارشاداتو — راشدین نوم د الله

د سید پور له تعلیماتو — بهترین نوم د الله

د غلام له عاصیاتو

غافرین نوم د الله

(جَلّ جَلَالُهٗ)

# کُلَّ یَوۡمٍ ھُوَ فِیۡ شَاۡنٍ

غواړی زړهٔ غمجن ځما نوے غزل نوے ساز
نوے غزل نوے ساز غواړی زړهٔ غمجن ځما

ځائے د نشیمن ځما ستا د زلفو تار دے
ستا د زلفو تار دے ځائے د نشیمن ځما

گل به شی چمن ځما ستا دیدار بهار دے
ستا دیدار بهار دے گل به شی چمن ځما

زړهٔ دے خیال جن ځما ستا د وصالت په نور
ستا د وصالت په نور زړهٔ دے خیال جن ځما

سر به شی بے تن ځما ستا د جلالت په تیغ
ستا د جلالت په تیغ سر به شی بے تن ځما

نقشبندی بن ځما دے د سید پوری فارم
دے د سید پوری فارم نقشبندی بن ځما

ډیر شرین گفتن ځما کړی د غلامئ زبان
کړی د غلامئ زبان ډیر شرین گفتن ځما

# وصل

تاله دے نا اشنا وطن زه وے آشنا کړمه
تاله خپل آشنا وطن زه وے ناشنا کړمه
زه ووم د وحدت عقاب بیا شوم دکثرت غراب
تاله دے آشنا صورت زه وے نا شنا کړمه
ملک وو جبروت ځما، کار وو ملکوت ځما
تاله دے آشنا روزګار زه وے ناشنا کړمه
ځما دلیونتوب ګیله ستا دتواب نتوب صله
تاله دے آشنا وصاله زه وے ناشنا کړمه
ساز و سوز دے ما ځنه، ناز کرشمه تا ځنه
تاله دے آشنا سروده زه وے ناشنا کړمه
بیا به کله راشمه له تا سره به ستا شمه
تا دے آشنا را تلو زه وے ناشنا کړمه
ما چه دقالوا بلیٰ له شوقه اوکړه دا صدا
تاله دے آشنا صدا زه وے ناشنا کړمه

کارځما جهلت ، ظلمت ، کار دے ستا رحمت غفت
تاله دے آشنا دستور ، زه وے ناشناکړمه
غلام نقشبندی یمه ، مرید د سرهندی یمه
تاله دے آشنا غلامئ زه وے ناشناکړمه

★

## غلبۀ هوا

بارے بیا شوه زمانه په انقلاب
قابو نه شه دا ځما مزاج خراب
مغلوب به چه تصوّر د تصبّر شی
د هوا شرر کړی پور ته اِلتهاب
آرزومند یم په جلوه ستا د دیدار
خو بیدا شه له حیرته اضطراب
غلامی به دَغلام په مخه د روَمی
راغے راغے دمولیٰ دغم سیلاب

# حیرت حسن

دمکان حُسن له مادے که لتا

نه پوهیږم چه له چانه دا غوغا

له لیلیٰ او له مجنون غرض دچا دے

گرفتار شوم د حیرت په ابتلاء

په صورت کښې دلالت د حقیقت دے

دلیل کله له منزل نه وی جدا

هر صورت چه دلالت د حقیقت دے

هر دلیل وی خپل منزل وته رسا

دمکان دے لامکان سره پیوند

لکه اسم جدا نه ئی له مسمّٰی

د ثمر او د شجر نامه یک سان وی

وے رنګ خواص افعال لری جدا

هر صورت او هر قوت چه دامکان دے

حقیقت کښې له قدرت نه دے عطا

غلامی د غلامانو میراث نه وی
هدایت او عنایت شی له مولیٰ

★

# وحدتِ شهود

نه لاما ته وایئ ما
زه لا تا ته وایم تا
و الله لرے لرے کار دے
زه جدا یم نهٔ جدا
هغه وخت به د کمال وی
چه نهٔ ما شے زه شم تا
د حیرت مقام حرمت دے
دلبریٔ کښے دهر چا
په خدمت کښے د غلام
وی رضا د خپل مولیٰ

# دخودئ فنا

زه چه ځان ته وایم ځان په ځان شرمیږم
ځان ځانی دکثرت زیان دے بر ملا
عاشقان له خپله ځان خبر نه وی
تصور چه غلبه شی د آشنا
دمکان وجود په مخ د لا مکان کښے
لکه لات دے یا منات دے یا عزا
دطالب وی په مطلوب پسے رفتار
دمنزل په سختئ نه لری پروا
هر تکلیف ورته فنا وی په مطلوب کښے
دمطلوب وجود ئے خیال سره بقا

# تغافل قلبی

هرعاشق چه له معشوقه وی غافل
غافل نه دے دلبرئ کښے دے جاهل

چه قدم د ماورآء په مقام ښد شی
مسافر د دلبرئ به وی جاهل

روزا نه نوے رفتار نوے منزل دے
په یو حال به ګذاره وی د کامل

شناور د معرفت دریاب کښے لامبی
مدعی د لامبو ناست وی په ساحل

امتحان د عاشقانو سربازی ده
د صادق وی په طلب کښے سر کائل

په سینه کښے زړه د هر چا خلوتی دے
خو مقام د زړه به ړانه شی حاصل

سینه زړه بار شی په صفت اسم یا ذات کښے
دا مقام د زړه مقام شه بے حائل

که ما دون پورے بندی شه یون دزړهٔ
بت پرست د زمانے دے هر شاغل
که قدم په وړاندے واخلی له امکانه
دغلام په غلامیٔ به شم قائل۔

# توحید

د توحید زبان جاری لره په کام کښې
ذوالفقار دے بندی نه وی په نیام کښې
چه توحید او معارف پورے بیانیږی
فصاحت دے وی پیدا هغه کلام کښې
آراسته چه په توحید سره محفل وی
لوئے دولت لوے عظمت دے په اسلام کښې
د دنیا په لذائذو کښې لذیذ هم
د توحید بیان شرین دے خاص و عام کښې
دا حمادِ زړهٔ سودا شوه الغیاث
یا الله تا نه لیونتوب دے په مقام کښې

خلاصه د دواړو کونو چه توحید دے
سرمایه دے د ایمان وی په غلام کښې

# مقصودِ حیاتِ عالم

روح مے بیدار یږی تل د لا په ترانو سره
منزل ته روانیږی د الّا په اشارو سره
لا نه په لا خلاص شو مه، الا کښے خاص الخاص شو مه
له هو نه الّا هو شو م د توحید په نشانو سره
د شو د توحید یاران، څه شو د تمجید خواهان
پیچ و تاب په مخ د یار زلفے په شانو سره
لا دے د نیستئ نظام الا دے د هستئ مقام
په منځ د لا الٰه الا کښے دے امکان له حیرانو سره
لا معنی ظاهر وَه، مخ د یار نائیر نه وه
عکس توحید ری شه د ا مخلوق په اِلّا هُو سره
لا دے د کثرت عدم، الا دے د وحدت قدم
محمد الرسول اللہِ تعارف دے ایصالو سره
وحدت دے په کثرت کښے دے کثرت دے په وحدت کښے دے
جشن توحید ری دے د کثرت په تغارو سره

# مقصود حیاتِ عالم

روح مے بیدار یږی تل د لا په ترانو سره
منزل ته روانیږی د الّا په اشارو سره

لا نه په لا خلاص شو مه، الا کښے خاص الخاص شو مه
له هو نه الّا هو شوم د توحید په نشانو سره

شو د توحید یاران، څه شو د تجیر خوهان
پیچ وتاب په مخ د یار زلفے په شانو سره

لا دے د نیستئ نظام الا دے د هستئ مقام
په منبع د لا الله الا کښے دے امکان له حیرانو سره

لا معنی ظاهر وه، مخ د یار نائیر نه وه
عکس توحید ی شه دا مخلوق په اِلّا هُو سره

لا دے د کثرت عدم، الا دے د وحدت قدم
محمد الرسول اللهِ تعارف دے ایصالو سره

وحدت دے په کثرت کښے دے کثرت دے په وحدت کښے دے
جشن توحید ی شے د کثرت په نعارو سره

رنګ د ګړ نګوال مولا رنګ دے د توحید تمام
خلاص له دو رنګۍ نه شه ستا په نند ارو سره

★

# مرګ وحیات

قدرت علم ځما کور ارادے کړمه بے کور
احدیت مے سکونت وو په کثرت شومه مجبور
اوس مے بیا غوا ړے خپل کور ته ارادے پور ته که شور
دا په ماؤ شوه د چا تلورا تلو کښے یم مجبور
د کثرت په نند ارو کښے ځانۍ د ه ځما کور
د توحید په نظاره کښے ځانۍ د ه عار بیغور
زه چه زه وا یم ځان ته سر له شرمه کړم نسکور
ځانۍ چه ځما د دو می په کړم مے کړه مصبور
په رحلت چه روح ځما شی په رحمت ئے که منظور
ستا ژوندون دے ځما ژوند ځما ژوند مړ ے د کور
د غه شمسی سید پوری کړه
د غلام د ستر ګو تور

# لَا اِلٰہَ اِلَّا اللّٰہُ

د توحید او د کثرت علاقه خیال که
چه له ذات سره نه یُو ده نه جُدا
لکه ګل چه وي په ښاخ پورې پیوند
نه ګل ښاخ وي نه له ښاخه وي جُدا
تر ګل بوټي د ګلاب وجود موقوف وي
زیب زینت د ګل له ښاخه وي پیدا
کیف د ګل وي په ګل بوټي کښې مستور
خو چه ګل د ښاخ په تن کښې وي فنا
چه قدرت ئې د ظهور اراده اوکړي
په مشیت ئې کړي رنګین او مجلیٰ
جلوه ګر په باغ وراغ شي د دې دهر
ناپیدا شي یو څو ورځو له پیدا
د توحید او د کثرت دغه مثال دے
د عالم لکه د ګل به شي فنا

لکه ښاخ به وی قایم ذات د قدیم

د ښهار مثال قدرت دے په هرچا

دغه یو طرف قایم بل شه نابود

کل فنا شه د کل بو تی ده بقا

دا د کل طرف مخلوق دے په مثال کښے

دا د ښاخ طرف امری غوندے کویا

د خالق مظهر وجود دے د مخلوق

چه وحدت دے په کثرت کښے قدیرا

# مُحَمَّدٌ الرَّسُوْلُ اللّٰهِ

حقیقت د محمّدؐ چه روح اعظم دے
د وحدت د ه مظهر ه برزخ کبرٰی
په احمد سره نامدار روح اعظم دے
محمدؐ نوم دے دجسم مصطفٰے
ملکوت کښے په احمد سره یاد یږی
په ناسوت کښے محمدؐ خیرالورٰی
په ادا کښے محمدؐ هسے اثر کړی
لکه سکر چه پیدا کاندے صهبا
ډیر درود او ډیر سلام وایم په تا
په عربو کښے پیدا شاه سَلَمؐا
د دیدار شوق ئے خنجر ځان هم زخمی که
د وصال مرهم به چرته شی پیدا
په جواب کښے د الست ته اول وے
په اعلان د ربوبیت کښے چه بلٰی

جلوه کرشوی اوّل په عبدیت کښې
دهر چا نه په وسیلو د بلی
په غلام باندی د رحم نظر بویه
ته یې جان د انبیاء برزخ زیبا

# اسمائے احمد صلی اللہ علیہ وسلم

مظہر دہ د اسماؤ د اللہ
ھمکی وا پرہ اسماء د مجتبیٰ

د تمام امکان وصول صفات د خدائی دی
امکان څه یعنی اظلال دے د حُسنیٰ

کہ احمدؐ دے کہ محمودؐ او کہ حامدؐ
یو مظہر د اسم ذات دے پہ معنیٰ

د توحید یو مظہر دہ نور څه نه دی
هر هغه چه دی له خدایه ماسویٰ

د توحید معنی چه نفی ما دون دہ
یعنی خدائے پہ هر صفت کښے دے یکتا

هر هغه صفت چه خدائے لره لازم دے
شرکت نشته پہ هغے کښے د هیچا

پہ واحد قدرت غالب دے پہ کثرت کښے
د کونین اثر کثرت کښے د فیسا

# مقامات

دا اول مقام اثر دے دفیضان

چه په نقش زړهٔ رنگین کړی ذاکران

دویم مقام دے دانوارو په زړهٔ باندے

چه په ذکر زړهٔ ذاکر وشی هر زمان

اطمینان له دے جریان نه پیدا کیږی

چه پرے هرکے شی دغفلت نام ونشان

دادریم مقام عروج دے یا نزول

چه پوهیږی پرے دفهم ناظران

څلورم مقام نظر دے په ځان باندے

چه غائب یم که حاضر یم دا زمان

دا پنځم مقام دوام دشهادت دے

نظر فکر دصفاتو په عنوان

انتها دمعرفت مقام دوصل

دصفاتو فکر خیال دے هر زمان

تصور به د صفا توکړی په ذات

چه لازم له ذاتِ حق نه دے هرتوان

اثری طرف کښے کیف دے د صفا تو

آمِری طرف کښے کیف نه لری شان

دتکوین هر دار مدار چه جلوه گر شی

حقیقت شی ارادت کښے نمایا ن

یعنی بے ارادے هیڅ نه شی ایجاد

په ایجاد کښے ارا دے سرهِ فرمان

مدام نوے نوے کار نوے رُوزگار دے

یعنی خدائے "کُلَّ یَوْمٍ هُوَ فِی شَأن"

هر هغه چه د قدرت په اندازه دی

هر ممکن ئے له ادراکه دے ناتوان

هر یو اسم په هر شی کښے ددا رینو

لری خپل اثری شان په بنه عنوان

جلالت د جلالی اسم اثر دے

جمالت د جمالی اسم نشان

د اسفلی علم د خلق دے که علوی
سراسر دے د اسمآءُ په فرمان

په هر شی کښے د هر اسم تربیت دے
حقیقت ئے له خاصے دے نمایان

که نصیب شی د غلام توفیق له خدایه
و حُسنے افعال خواص به کړی بیان

# اِتّبَاعِ رسُولؐ

د توحید دولت په لاس د مصطفیٰؐ
رسیدلے دے هرچا ته په دنیا

چا قبول که مشرف شو په توحید
څوک مردود شو عاقبت به شی رسوا

د توحید مظهر رسول دے مجتبیٰؐ
د کثرت ماده بنی خیر الوریٰ

د حضرت په سُنّت بویه هر عمل هم
مخالف به له سُنت نه وی اغوا

اسوه د محمدؐ رسول الله هم
عبادت دے عنایت دے له مولیٰ

د غلام آرزو توحید دے شب و رُوز
په هر کار کښے اطاعت د مصطفیٰؐ

# زاری

که تسبیح دی که تهلیل دی که ثنا
یوالله له دہ لازمه په هر چا
چه مالک د دوارو کونو یوالله دے
هم رازق دے هم خالق دے د هر چا
شریک نه لری په ذات کښې په صفت کښې
په واحد صفت کافی دے ذات یکتا
دہ له ډیر کرم نه ډیر علم پیدا که
له عدم نه شته کوونکے د هر چا
د احمام خمائي نه وہ ذات موجود وو
عاقبت ځمونږ فنا د دہ بقا
فنائی ځمونږ بنا ئسته که په توحید
د غلام زاری منظور رہ که مولی

# خمونږ مطبوعات

د مناسب تربیت او تعلیم یو تر بله دومره نږدے او جوړ تعلق دے لکه څومره چه د روح او بدن. تربیت هغه بیه دے کوم چه څمونږ دینی پوهے او شعور سره سمون خوری. د دینی پوهے د پاره د ښو او غوره کتابونو مطالعه ضروری ده. نن د زغل زمانه ده. د درنو درنو کتابونو د لوستو وخت ډیر کم دے. د دغه مقصد له خاطره محمدی دارالاشاعت د "هوم لائبریری" په سطح د دینی، اخلاقی، معلوماتی او تعلیمی کتابچو سلسله شروع کړے ده. هر ترقی خوا کور کښے د دا قسم کتابچو موجودګی ضروری ده. د دغه سلسلے یو څو کړئ دا دی. نور معلومات د پاره په لاندنیئے پته او لیکئی.

اردو:- ۱۔ ادب اور اخلاق۔ ۲۔ فضائیل حضرت علی رض۔

پښتو:- ۱۔ انوار توحید (منظوم)۔ ۲۔ الماس (منظوم)

انګریزی:-
1) Introduction To Islam.
2) The Benefit Of Prayer.
3) The Benefit Of Preaching.

## محمدی دارالاشاعت

۳۳۳ ۸ لالوکھیت کراچی نمبر ۱۹